

ويکيپېډيا
يو وړيا پوهنغونډ

# بي-ډي-ايس-ايم



د BDSM له کورنۍ څخه د «بانډج» په نوم کړنه، د سکس پرمهال ښځه په ځانګړي ډولونو تړل کېږي

**بي ډي ايس ايم** (په انګرېزي: BDSM) د ژوندانه سټايل، شخصيت او جنسي اړيکې لپاره د ځينو اروايي کړنو له مخې يو ډول تګلاره او ماډل دی چې ډېرې کړنې او کارونه پکې شامل دي او يوه لويه ټولګه ورڅخه جوړېږي، د بېلګې په توګه د جنسي اړيکې پرمهال د BDSM له مخې کړنو څخه يوه يې دا ده چې پکې کس تړل کېږي ترڅو پر جنسي شريک د غلبې احساس وکړي، همداراز ښځې هم په دې حالت کې خوښوي چې د بدن ځينې غړي يې تړل شوي وي او په بشپړه توګه د خپل جنسي پارټنر يانې نارينه تر ولکې لاندې وي. دا کړنه او خوښه د نړۍ په ډېرو برخو کې دود ده چې د شهوت سړولو پرمهال خلک ورڅخه کار اخلي. په لږ واضح ډول؛ يو سړی غواړي د سکس پرمهال ښځه وتړي او دا احساس وکړي چې په بشپړه توګه يې تر ولکې لاندې ده يا په هر دليل له دې کاره خوند اخلي نو دا کار کوي، يا په ورته توګه يوه ښځه له دې حالته خوند اخلي.

څېړنو ښودلې چې په نړۍ کې له ۱۵ څخه تر ۲۰٪ نارينه خوښوي چې د BDSM په ماډل سکس وکړي همداراز له ۱۲٪ څخه تر ۱۵٪ ښځې خوښوي چې د سکس پرمهال يې بدن وتړل شي او دا ډول کړنه ورسره وشي. د بي‌ډي‌ايس‌ايم بنسټ د دواړو اړخونو رضايت دی. که چېرته له دوو شريکانو يو يې راضي نه وي نو يو جرم بلل کېږي او له رضايت پرته دا کارونه ترسره کېدلای هم نشي. ترسره کوونکي بايد په بشپړه توګه چمتوالی ولري، ځکه يو يې د غلامۍ رول لوبوي او بل يې د خدايتوب.

## لغات پېژندنه

بي‌ډي‌ايس‌ايم د درېيو مهمو برخو لنډيز دی:

- تړنه او سمبالښت (B&D)
- ولکه درلودل او تسليمي/واک منل (D&s)

- سادومازوخیزم (S&M)

که څه هم دلته ترټولو مهمه برخه یې د سادو مازوخیزم اروایي برخه ده خو ترڅنګ یې ځکه دا نوري اصطلاح ګانې اضافه شوي چې ترڅو په واضح توګه بې‌ډېاېس‌ایم او هغه کړنې چې پکې ترسره کېږي، تعریف شي.[۱]



د BDSM لغوي جوړښت

## اروا‌پوهنه

پروېز او نورو فعالانو ادعا کړې ده چې بې‌ډېاېس‌ایم په ماشومتوب کې د ناوړه ګټه اخیستنې پایله ده. خو څېړنې ښیي چې د دې ادعا د سم یا ناسم ثابتولو لپاره تر دې دمه کوم ثبوت شتون نه لري.[۲] تر ډېره، څېړنو ښودلې؛ هغه کسان چې په ماشومتوب کې د ځورونې او شخصیت وژنې سره مخ شوي وي په لویوالي کې د bdsm کړنو ته لېوالتیا لري او په دې ډول اختلالاتو اخته کېږي. (البته څېړونکي دې کار ته د اختلال یا ناروغۍ نوم نه ورکوي، د یوې نورمالې کړنې او خوښې په توګه یې معرفي کوي).[۳] د ځینو شواهدو او څېړنو له مخې دا امکان لري چې د bdsm انتخابوونکي/ټاکونکي کسان په ماشومتوب کې د ځورونې سره مخ شوي دي. همدارز ډېرى هغه کسان چې بې‌ډېاېس‌ایم په ژوند کې د یوې نورمالې کړنې او تګلارې په توګه ترسره کوي دا ښکاره شوې چې دوی پخوا په ماشومتوب کې د ځورونې او تاوتریخوالي سره مخ شوي دي.[۴]

خو په اصل کې؛ دا پوښتنه شتون لري چې ولې یو انسان په سادیزم او مازوخیزم اخته وي او ولې د شکنجې او مړیتوب چلندونه خوند ورکوي. ځینې ځوابونه شتون لري چې په هر دغه ډول انسان پورې اړه لري، هر دغه ډول انسان بېلابېل ځوابونه لري. د ځینو لپاره تسلیمېدل یا د بل چا په ولکه کې اوسېدل د سټریسي او مسؤلیتي ستونزو څخه د تېښتې لپاره یوه درملنه ده، یعنې دغه کس د ګناه احساس، د ډېرو مسؤلیتونو احساس یا سټریس لري او په دې کار سر راحت او هوساینې کوي. د ځینو لپاره بیا تسلیمېدل او د ځواکمن انسان تر ولکې لاندې اوسېدل د امنیت او ساتنې احساس ورکوي. دغه کس د جنسي شریک سره له مخکې د رضایت په توګه توافق کوي، او دغسې کړنې ترسره کوي. خو له بل پلوه ولکه ټینګوونکی یا هغه څوک چې په دې کړنې کې د فاعل په توګه عمل ترسره کوي، د بل انسان له ځورونې او درد څخه خوند اخلي. که څه هم د دې موضوع په اړه پوهېدل سخته ده چې ولې داسې کړنې د جنسي خوند اخیستنې لامل کېږي خو څه ناڅه څېړنې او تجربې تر دې دمه شتون لري. جوزف مرلینو چې لیکوال او اروا‌پوه دی په یوې مرکې کې یې وویل د بې‌ډېاس‌ایم کړنو څخه خوند اخیستونکي دواړه جنسي شریکان که د یوبل په خوښه دغسې کړنې ترسره کوي اروایي ستونزه نه ده او یوه نورماله کړنه ده.

نوموړی وایي: یوازې په هغه وخت کې دغه کړنه ناروغي بلل کېږي چې له دوو څخه یو یې راضي نه وي یا په کړنې کې ډېر ځوریږي چې ټولنیز ژوند یې له اختلالاتو سره مخ کړي. له دې پرته دغه کړنه یوه ناروغي نه ده. خو که چېرته زه له دغه کس سره مخامخ خبرې وکړم چې په ژوند کې یې څه تېر شوي او کومو تجربو دې کار ته هڅولی دی، هغه مهال ښایي نور نظرونه ولرم.[۵]

## قانوني حالت


که څه هم په BDSM کې جنسي کړنې ترسره کېږي خو جنسي شهوتي کارونه د دغه کار اصلي برخې نه دي، يعني يو څوک پرته له دې چې سکس وکړي د بي‌ډي‌ايس‌ايم کورنۍ پورې اړوند کارونه ورسره کوي، لکه تړل، ولکه ټينګول او ....[۶] په عکس کې ښکارېږي چې چې شهوتي ځورونې پرمهال د ښځې واژن شکنجه کېږي.

### اتريش

د سزايي قانون د ۹۰يمې مادې له مخې، د بدن زخمي کېدل او چاته جسمي تاوتريخوالی رسول که چېرته د فرد په خپله خوښه وي جرم نه دی او ترسره کوونکي ته سزا نشته. په دې قانون کې راغلي يوازې هغه مهال ترسره کوونکي ته سزا شته چې بل چاته په اخلاقي توګه زيان ورسوي يعنې په زور او جبر دا کړنه ورسره وکړي. خو زيان بيا تر زيان پورې وي، که چېرته قرباني له غټ زيان سره مخ شي ښايي په قوانينو کې ځينې بدلونونه راشي.[۷]

### کاناډا

په ۲۰۰۴ زېږديز کال کې په د کاناډا يو قاضي په محکمې کې ووېل: هغه ويډيوګانې چې د BDSM فعاليتونه پکې ښکاره کېږي بدې نه دي او د تاوتريخوالي په توګه نه پېژندل کېږي. خو په دې شرط چې دواړه ترسره کوونکي لويان وي او دغه کړنه د يوبل په خوښې او رضايت سره کوي. په ۲۰۱۱ کال کې د کاناډا سترې محکمې يو حکم صادر کړ چې پکې ويل شوي وو: د يو ناخبره کس سره هرډول جنسي کړنه جرم بلل کېږي که دا کړنه د قرباني په خپله خوښه وي يا نه، خو چې له کړنې او موضوع څخه ناخبره او نادرکه وي بايد ورسره دا کړنه ونشي.[۸]

### جرمني

د جرمني د سزايي قانون د ۱۹۴يمې مادې له مخې، دغه ډول ځورونې يوازې هغه مهال د جرم په توګه دي چې د قرباني په خپله خوښه نه وي ورسره شوي.[۹]

### امريکا

د امريکا فدرالي قانون د bdsm په اړه کوم خاصه سزا يا قانون په پام کې نه لري[۱۰] خو هر ايالت په دې برخه کې ځانته ځانګړي قوانين لري، تر ډېره په ټولو ايالتونو کې د بي‌ډي‌ايس‌ايم قوانين يو ډول دي او که د خوښې په حال کې وي سزا نشته.[۱۱]

## اړونده مخونه

- د جنسي سادیزم اختلال
- ولکه درلودل او تسلیمي
- بانډج
- سمبالښت (بي-ډي-ایس-ایم)
- سادومازوخیزم
- فاعل، مفعول او سویچ

## بهرني لېنکونه

## سرچينې


1. Philosophizing About Sex (https://books.google.com/books?id=MNMRCgAAQBAJ&pg=PT244) Archived (https://web.archive.org/web/20210605220439/https://books.google.com/books?id=MNMRCgAAQBAJ&pg=PT244) 5 June 2021 at the Wayback Machine., PT 244
2. Richters, Juliet; De Visser, Richard O.; Rissel, Chris E.; Grulich, Andrew E.; Smith, Anthony M.A. (1 July 2008). "Demographic and Psychosocial Features of Participants in Bondage and Discipline, "Sadomasochism" or Dominance and Submission (BDSM): Data from a National Survey" (PDF). *The Journal of Sexual Medicine*. **5** (#7): 1660–1668. doi:10.1111/j.1743-6109.2008.00795.x. ISSN 1743-6109. PMID 18331257. خوندي شوی له the original (PDF) on 20 October 2016.
3. Jozifkova, Eva (11 August 2013). "Consensual Sadomasochistic Sex (BDSM): The Roots, the Risks, and the Distinctions Between BDSM and Violence". *Current Psychiatry Reports* (in انګلیسي). **15** (#9): 392. doi:10.1007/s11920-013-0392-1. ISSN 1523-3812. PMID 23933978.
4. Cook-Daniels, Loree; Munson, Michael (5 May 2010). "Sexual Violence, Elder Abuse, and Sexuality of Transgender Adults, Age 50+: Results of Three Surveys". *Journal of GLBT Family Studies*. **6** (#2): 142–177. doi:10.1080/15504281003705238. ISSN 1550-428X.
5. Interview with Dr. Joseph Merlino, David Shankbone, *Wikinews*, October 5, 2007.

6. Empty citation (help) :{{cite book}}
7. "Strafgesetzbuch (StGB)" (PDF). *Legislation Online* (in الماني). خوندي شوى له the original (PDF) on 19 April 2019. بياځلي په 25 May 2018.
8. Mike Blanchfield (27 May 2011). "Woman can't consent to sex while unconscious, Supreme Court rules". *The Toronto Star*. خوندي شوى له the original on 30 May 2011. بياځلي په 27 May 2011.
9. Decision of the Bundesgerichtshof, 26 May 2004, 2 StR 505/03, which may be found at: BGHSt 49, 166 (bundesgerichtshof.de (http://juris.bundesgerichtshof.de/cgi-bin/rechtsprechung/document.py?Gericht=bgh&Art=en&Datum=2004-5&Seite=0&nr=29672&pos=19&anz=244&Blank=1.pdf) Archived (https://web.archive.org/web/20181118164537/http://juris.bundesgerichtshof.de/cgi-bin/rechtsprechung/document.py?Gericht=bgh&Art=en&Datum=2004-5&Seite=0&nr=29672&pos=19&anz=244&Blank=1.pdf) 18 November 2018 at the Wayback Machine.)
10. "The PEOPLE of the State of New York, Plaintiff, v. Oliver JOVANOVIC, Defendant". *FindLAw*. September 25, 1997. خوندي شوى له the original on 13 April 2021. بياځلي په April 13, 2021.
11. "New Jersey Criminal Offenses". *njlawman.com*. خوندي شوى له the original on 4 November 2016. بياځلي په 28 November 2016.